ګڼه ۱۲
کال ۱۳۴۷

3/1969

۱۳۴۷
حوت (۱۲)



## ددې ګڼې مضامين





د کندهار د مېرمنو ټولنه سرابېره پرده چې د هېواد د ښځو د نهضت په پرمخ تګ کې ستر رول لوبولی دی سېمې د مېرمنو د طبقې د ذهنې تنوير او په کورنی چارو کې په تېره بيا د کوچيانو د روزنې په چارو کې د قدر وړ خدمتونه کړي دي

کندهار

د ۱۳۴۷ لمریز کال د کب میاشت

# زراعتي انکشاف

ځرنګه چې دنړۍ پرمخ ټوله ژوی وغذا ته اړتیا لري او دا هغه انرژي ده چې د انسان د وجود په ساختماني تشکل کې ستر تغیر او تحول راولي، نو دضرورت په لحاظ انسانانو ددغې غریضې له مخې وکړای سوای چې دغلو، دانو د انواعو د پیژندنې او د کرهڼې دتکامل او انکشاف په برخه کې په مختلفو طریقو باندې په مادي او معنوي لحاظ بري ومومي چې دلرغوني زماني په ادوارو کښې ئې ځرګند تحولونه په برخه شول چې نتیجه ئې اوس په اکثرو متمدنو او مخ پر انکشاف روانو هیوادو کې لیدل کیږي او هرهیواد کوښښ کوي چې پدغه برخه کې د نوو علومو د مختلفو طریقو له لارې په میکانیزه سیستم سره د ارتزاقي موادو د تولید دارزښتونو له مخې اقتصادي بنیاد ټینګ او خپل اقتصاد ددغې لارې ورځ په ورځ غښتلی کړي خو پدې کې شك نسته چې بالاخره به دا هاند ددې موجب وګرځي چې په میکانیزه شکل سره به د ارتزاقي تولیداتو د ډېر تولید په اثر دغذائي موادو قلت له منځه ایسته شي. په اوسني شرایطو کې زموږ په ګران هیواد کې چې نفوس ورځ په ورځ مخ پر زیاتیدو دی نو دغلو دانو د کرهڼې نتیجه دغوایو په اوږه د تولید د توان له مخې دډاډ وړ نه ده ځکه چې تردوو پنځه کلنو انکشافي پلانو مخکښې زموږ په هیواد کې زراعت په علمي او تخنیکي ډول سره وده نه وه کړې او زموږ د بزګر طبقې داکثرې برخې دژوندانه سطح دډاډ وړ نه وه او په ډېرو نامساعدو شرایطو کې ئې ژوند کاوه کله چې زموږ متبوعه حکومت د وګړو د آرامې د شاړو و مځکواو دښتو د خړوبولو او همدا رنګه د زراعتي تولیداتو د زیاتوالي په غرض د انکشافي پلانو په لړ کې په لویو پروژو لاس پورې کړ نو ئې دهیواد په مختلفو برخو کې بندونه او داوبو لګولو لوی لوی کانالونه په اساسي



ډول جوړ کړل چې علاوه پر پخوانیو ګروندګرو اوس نور په زرهاؤبې کوره ناقلین په راحت ژوندو باندې کوي او همدارنګه ئې دعصر د مقتضا سره سم دعصري میکانیزې دراوستولو په غرض یو شمېر ټراکتورونه وارد کړل او د مناسبو شرایطو په مقابل کې ئې د کروندګرو په واك کې پرېښودل چې دا کار نه یوازې د کرهڼې د تکامل او د زراعت د تخنیك سره د کروندګرو د آشنا کیدو په لاره کې ګټور اقدام ګڼل کیږي بلکه د مملکت د اقتصادي بنیاد مزئي هم غښتلی کړ ځکه چې زموږ ګران هیواد افغانستان داقلیمي شرایطو په لحاظ دزراعت له پاره د نړۍ تر ډېرو هیوادو مساعد دی نو لازمه ده چې د زماني دایجاباتو سره سم دیوې پوهې جامعې په شان له دغه راکړل شوي نعمت ځخه لکه څنګه چې ښائي دخپل مټ په قدرت په زړه پورې ګټه لاس ته راوړو څو وکړای شو چې په عمیق نظر د اجتماعي تحول او وده پړاونه ترشا پرېږدو او دګران هیواد د ارتقا لپاره نور هم دخدمت مصدر وګرزو.

«۴»

# د آریانا د واکدارانو پښتوانی سلسله

پر مختلفو علاقو لکه ډیلی، بنګال، پنجاب، دکن، ګجرات، مالوه مندو او نورو پاچهی او سلطنت کړیدی، چی هغه لوی پیاوړی ئې قطب الدین ایبك آرامشاه، شمس الدین التمش، رکن الدین، فیروزشاه، ملکه رضیه، معزالدین بهرامشاه، علاوالدین مسعود

ناصرالدین، محمود شاه، غیاث الدین بلبن، معزالدین کیقباد، جلال الدین خلجی، علاءالدین خلجی، محمد تغلق، خضر خان نیازی بهلول لودی، سکندر لودی، او ابراهیم لودی دی، دغو حکمرانانو هر یوه پخپل وار سره د افغانانو کلتور او مدنیت په هند کی خپور کړی دی او د پښتنو د مدنیت د عظمت په لار کی ئې ستر ستر خدمتونه کړی دی.

✡✡✡

## سوری شیر شاه

هغه مهال چی کورګانی بابر په ۹۳۲ه کال دافغان لودی کورنۍ ته په ډیلی کی سقوط ورکی، نو د پښتنو شاهزادګانو د هند په هره ګوښه او شاوخوا کی د پښتنو د حکمرانۍ د ژوند

دپاره ئې په کار لاس پوری کی، په دغه ترڅ کی فریدخان سوری چی په شیرشاه سوره ئې شهرت ومیند میدان ته راووت، دافغانانو لیکرشف ئې په لاس کی ونیو، ده په دوو لویو تاریخی محاربو (چوسا او قنوج) کی همایون ته سخته ماتې ورکړل او ډیلی ئې ونیو (۹۴۷ هجری)

او پښتنی سلطنت ئې بیرته د نوی ـ ر څخه قایم کړ، په پای کی دغه ستر اولوی زمامدار د کالنجر د کلا په محاصره کی په (۹۵۴ه) کال کی وفات شو.

✡✡✡

## خوشحال خان خټک

دهند د کورګانی دولت د لومړی سرڅخه پښتنی واکدارانو په هرځای کی دخپل ملك څخه د بېګانه و د تسلط د محو کولو دپاره

په کار لاس پوری کړ، د بابر د دوری څخه نیولی بیا داورنګ زیب تردوری «۹۳۲-۱۱۱۸ه» د هند کورګانی امپراطوران تل د پښتنو سره په جګړو کی

اخته وه، په دغه مهال کی د پښتنی شخصیتو او ستر و ناریته وڅخه یو هم خوشحال خان خټك دی.

دغه د توری او قلم خاوند خوشحال خان د پښتنو د تاریخی عظمت د احیاد پاره د اورنګ زیب د قواو سره وجنګیده دغه نوموړی په

۱۰۶۴ه - ۱۶۶۴م) کال د اورنګ زیب له خوا بندی شو، څلور کاله ئې په بندی خانه کی تیر کړه سره له دې

چی د محبس څخه ایله شو دده ملی پښتنی روح په خوځیدو راغی.

د دغه نوموړی د مغلو سره لویې او مشهوری محاربې دا دی:

۱)- د نوښار محاربه.
۲)- د تاتر محاربه.
۳)- د خانپج محاربه او نوری.

په پای کی دغه ستر پښتون توریالی میړه په (۱۱۰۰ه-۱۶۹۱م) کال کی وفات شو.

# هو تك مېر و يس خان :

دغه نوموړی د پښتنو د نظامی لویو مېړو اوسترو شخصیتو څخه دی چی د میلادی ۱۸ قرن په لومړی سر کی په کندهار کی د صفوی سلطی په مقابل کی ودرېدی د پښتنو د غلجیو د ملی حکومت بنسټ ئې کېښېښود ۰

مېرویس خان په خپل معقول سیاست او پوهی او تدبیر سره نسه یوازی کندهار په ۱۱۱۹ه ۱۷۰۸م کال آزاد کړ بلکه پخپله ا ته کلمنه پاچهی اوریاست کی ئې د صفوی پرڅو لو اعزامی لښکرو غلبه وکړه ۰

مېرویس خان تر خپل ملی ستر خدمت وروسته په ۱۱۰۰ه ۱٦۹۱م کال وفات شو ۰



# هو تك شاه محمود :

دغه نوموړی د هوتك مېرویس خان پیاوړی زړور ګران زوی و، په کندهار کی په ۱۱۲۹ه ۱۷۱۷م کال پاچا شو؛ شاه محمود د هوتکی دولت د قلمرو لمن پسی ارته کړه، په پای کی تقریباً د پنځو یشتو زرو لښکرو سره د صفوی پای تخت اصفهان د نیولو قصد وکړ، شاه محمود د ګلناباد د میدان په محاربه کی د صفوی شپېتو زرو لښکرو ته سخته ماتی ورکړه اصفهان ئې محاصره او کلابند کی په

پای کی په (۱۱۳۵ه اکتوبر ۱۷۲۲م) کال د محرمی په میاشت کی صفوی شاه حسین پخپله د پاچهی تاج اوخول د هوتك شاه محمود پر سر کېښېښود، دغه نوموړی د لوی بری او فتح په ډول اصفهان ته ننووت هو تك شاه محمود خان په لږ مهال کی د ایران د څینو اطرافو

پر ولایاتو ئې غلبه وکړه، دغه نوموړی ستر فاتح په ۱۱۳۷ه کال د ناجوړی په امله مړ، یا ووژل شو ۰



# هو تك شاه اشرف :

دغه نوموړی د پښتنو د هوتکی دسترو زمامدارانو څخه دی چی د لویو ښورښتو په مهال کی ئې د خپلی توری قدرت او جوهر ښکاره کی، هغه وخت چی دی په اصفهان کی د اقتدار څښتن شو، نو عثمانی ترکان او روسان، او د صفوی شاه حسین زوی صفوی طهماسب دا

تو له دده په مقابل کی بېل بېل خطر ګڼل کېدی، د ده دستی صفوی طهماسب و ما- زندران ته وشاړه، او

عثمانی ترکانو ته ئې ویز د ته نژدی سخته ماتی ور کړه او د کسپین وبحیری ته نژدی ئې

روسان هم پر شا کړل، نو ځکه دده سلطنت د ترکېی او روسیې له خوا په رسمیت و پېژندل شو ۰

د افشا نادر قلی د پورته کېدو سره شاه اشرف ته یو لوی خطر پیدا شو، څرنګه چی د کندهار څخه ملا تړ ور و نه رسېدی نو د طهماسب

او نادرافشار سره ترسختو جګړو وروسته ئې مخ و کندهار ته و نیو، مګر دغه ستر نوموړی د ښور اوك په سیمه کی ووژل شو ۰ (۱۱۴۸)



# هو تك شاه حسین

شاه حسین هوتك چی د شاه محمود ترمړ نی وروسته ځان د هوتکو د پاچا په حیث سره اعلام کړ نو په ۱۱۸۲ه کال ئې د دوه ولایتو نه ږوب او شال د کندهار د هوتکی دولت د قلمرو ضمیمه کړل، او په ۱۱۳۹ه کال شخصاً پخپله تر --

ټبرو (داسمعیل خان ټبره، او دغازی خان ټبره) اوکومل پوری مخ ته ولاړ، دغه سیمې ئې هم دخپل دولت په قلمرو کې شاملې کړې هوتک شاه حسین په افغانستان کې د یوه ستر او مقتدر دولت په جوړولو کې ډېر کوښښ وکړ، مګر د نادرافشار خطرچې دغه

نوموړی په اصفهان کې هوتکي حکومت او په هرات کې ئې دابدالي حکومت ته سقوط ورکړی و دده دمراد مانع شو، هوتک شاه حسین پوره یو کال په کندهار کې دنادرافشار د بې سروپای لښکر سره مقاومت وکړ خو په پای کې کندهار په ۱۱۵۰ھ کال دنادرافشار

په لاس ورغی او هوتک شاه حسین د نادر په بندیخانه کې په مازندران کې وفات شو .



## ناصر سیدال خان

دغه نوموړی دهوتکي دورې دعسکری سترو منصبدارانو څخه دی چې دهوتکي سلطنت دلومړی سرڅخه ئې په عسکری سفرو کې دیوه نامي زړور جنرال په حیث اشتراک درلود، او دهوتکي

شاه اشرف په دوران کې د سپه سالاری رتبې ته ورسیدی تر دغه وروسته ئې په اکثرو لویو محاربو او جګړو کې ګډون کاوه، په ایران او افغانستان کې ئې عسکری ستر ستر خدمتونه کړی دی، دغه پښتون مجرب سپه سالار هغه مهال چې نادرافشار قلات محاصره کړی ؤ ،

دیوې لږ قوې په ملګری سره ئې دوې میاشتې دهغه په مقابل کې مقاومت وکړ، په پای کې ئې دنادرافشار پر فوج او لښکرو په ټېره زړورتیا دزمری په شان یرغل او هجوم ورووړ، څرنګه چې دکندهار څخه پوره کومک ورونه رسیدی نو ځکه سیدالخان د نادرافشار د لښکرو په لاس کښېووت، دغه زړور مشهور توریالی پښتون جنرال

چې تر دغه وخته یو ګړی آرام نه ؤ کښېنستلی او تل دغه د پښتنی سربښندونکو قائد په خونی عملیاتو کې ګډون کاوه د نادر په امر ړوند شو · او دخپلې کورنۍ او اولادی سره دکوهدامان وشکردری ته راغی څو هلته وفات شو .

دهوتکي دورې عسکری ستر توریالی مړونه :
آماالله خان، نصرالله خان، زبردست خان، بهادرخان سپه سالار، آزادخان او نور ....

## ابدالي
## احمد شاه بابا

احمدشاه بابا د نوی افغانستان مؤسس دیوشرو شور په وضعیت کې افغانستان د تیت و پرکتوب او تشتت

څخه وساتی او ډېر ژر ئې په یوه ستره امپراطوری تبدیل کې د مشهد او نیشاپور بیا تر ډیلی پوری پراخه وه.

احمدشاه بابا په افغانستان کې نوی او تازه عسکری سیستم میدان ته را ویوست چې تر ده وروسته ئې ډېره زمانه رواج درلود، دغه ستر بهادر او زړه ور مېړه

د پښتنو دټولو ټکمو او قبیلو اتحاد وساته او دوی ته ئې په یوه سیاسی تمامیت کې د ننه وحدت او اتفاق

ورښخښی او ځان ئې د آریانا لرغونی او باستانی سرحداتو ته ورساوه او د هغوسېمو موقف ئې د پښتنو په لاس کې تثبیت کړ، او په

دې ډول ئې دخپل ستر ملت دپاره داسې حیثیت او عظمت وروباخښه لکه چې ددوی سره وړوو، ده اته واره په هند کې عسکری سوقیات عملی کړل .

او دغه ملك ئې د دراني امپراطور تر حمايې لاندې راوست احمدشاه بابا د ۱۱۶۰هـ ۱۷۴۷م تر ۱۱۸۶هـ ۱۷۷۴م پورې پاچهي وکړه، په پای کې ئې د ملت او وطن تر ستر و خدمتو وروسته په ډېره نام نیکۍ او نامدارۍ د نړۍ څخه رخصت واخیست.



## شاه پسند خان امیر لښکر

د احمدشاه بابا د ستر و نظامي وګړو څخه دی چې د نظامي سپرو په تندو، او د مستقلو پرغلو، او قراولي محاربو په عملیاتو کې مشهور او معروف دی، له همدې لامله ده ته د قراول باشي لقب هم ورکړه شوی دی، احمدشاه به دغه نوموړی اکثره د لیرې مسافو او ځایو په مستقلو وظیفو سره مؤظف کاوه، شاه پسند خان به هم په ډېره مړانه او ډېر موفقیت سره دغه وظیفې سرته رسولې.



## دراني تیمور شاه

د خپل پلار لوی احمدشاه بابا تر مړینې وروسته په ۱۱۸۶هـ کال پاچا شو د خپلې شل کلنې پاچهۍ په دوره کې ئې د دورانو امپراطورۍ چې پلار ئې بنسټ ایښی ؤ ښه وساتله د هر تیرې کوونکي لاس ئې د تیرې څخه لنډاوه خو په پای کې په ۱۲۰۷هـ ۱۷۹۴م کال وفات شو.



## بارکزی وزیر فتح خان

سردار فتح خان د سردار پاینده خان نامې زوی د افغانستان د سدوزو د دورې د لویو سیاسي او عسکري شخصیتو څخه دی، دغه

نوموړی سردار د سدوزو د امپراطورۍ په ساتنه کې ډېر ډېر خدمتونه کړي دي، او دراني شاه محمود دغه نوموړی سردار د ده د ښو خدمتو په مقابل کې په ۱۲۱۶هـ ۱۸۰۱م کال وزیر مقرر کړ، تر دغه وروسته د شاه محمود د سلطنت په دوره کې او لږ موده هم د شاه شجاع

په وخت کې، او بیا دوهم پلا د شاه محمود د پاچهۍ په وخت ئې د وزیر په حیث وظیفه اجرا کوله او ډېر ډېر خدمتونه ئې وکړل، په پای کې دغه پیاوړی او عسکري لوی قاید په ۱۲۳۳هـ ۱۸۱۸م کال د شاه محمود د زوی کامران د مخالفت په سبب لومړی ړوند کړ شو، بیا په ډېر غمجن وضعیت سره په همدغه کال ووژل شو.

## امیر دوست محمد خان

امیر دوست محمد خان د ځلمي توب د لومړي سر څخه د خپل پوهیالي ورور سره د پاچهۍ په کارو کې لویه برخه درلوده په پای

کې د سدوزو د سلطنت د انقراض په مهال کې د خپلو ورونو په سبب ډېر قدرت لاس ته راوست څو په ۱۲۴۲هـ ۱۸۲۶م کال په کابل کې امیر شو، ده دغې بې

نظمۍ او ګډوډ وضعیت چې د سدوزو د اقتدار د انحطاط

په دوره کې پیښ شوی و د منځه وړلو د پاره ډېر زحمت وګیښ، خو ځرنګه چې د برطانوي هند و خواهش او

غوښتلو ته ئې چې د افغانستان د ملي منافعو او ګټو د پاره مضر ؤ په درد جواب ورکړ،

نو ځکه انګریزانو ده په عصر کې پر افغانستان تیری وکړ، د پښتنو او انګریزانو لومړی جنګ په ۱۸۳۸هـ ۱۸۴۲م کال کې پیښ شو. د دغه جنګ په مهال کې امیر دوست محمد خان تر پایه پورې (نور بیا)

دوست محمد [ تره کی]

# د ګرمسیر د کلتور وضع

## «دریم فصل»

۱۳)- لیونی بابا: د اسړی هم د بلوڅو د قوم څخه او په لنډۍ کی پروت دی .

په پورتنیو زیارتو کی مهم او مشهور زیارت د امیر بلند صاحب دی چی قبر ئې ډېر قدیم او د وفات تاریخ په هغه سپینه ډبرینه لوحه چی دده د قبر د پښو و خوا ته د رول شوېده ۶۰ هجری سنه لیکلی شوی ده دعربستان څخه د هجرت په ډول دیوه فامیل سره راغلی دی چی فامیل ئې ئې ورغ په یوه لویه قبیله تبدیل شویدی چی د خلیفه ګانو ګلی ورته وایی په قوم عرب ځانونه بولی او ددغه زیارت ډېر شاوخوا کورونه لری اکثره ویل کیږی چی دا لوی روحانی شخصیت د میر حمزه صاحب څخه کائنات اکاؤ د هغه زوی دی د زیارتونو احترام او د قدر په سترګه ورته کتل د ګرمسیر او هلمند د نورو منطقو د خلکو یوه عنعنه ده هر څوک باید د زیارت وکی. زیارتونه په هر کلی کی یو نفر خدمتګار (مجاور) لری او د کلی خلک هغه ته د خیرات په ډول ډوډی او کالی ورکوی دا کثره زیارتونو شاوخوا په اختر کی وطنی میلی او لوبی هم کیږی .

## عرف او عادات

عرف او عادات د یوې جامعې د ژوندانه مهمو شرایطو څخه حسابیږی. که ټولنه بدوی حالت ولری یا مترقی وی بیا هم په دواړو حالتو کی دیوه عرف او عادات خاوندهوی .

عرف او عادات د انسانانو په مختلفو ټولنو کی مختلف شکلونه لری چی د هغې ټولنې په اجتماعی رشد پوری اړه لری که ټولنه اجتماعی رشد او عقلی بصیرت ولری عرف او عادات ئې مترقی وی او د دغه ډول که پورتنې صفات ونه لری د ابتدائی او غیر مترقی عرف او عاداتو خاونده وی .

په ساکته ټولنه کی عرف او عادات ډېر ټینګ دی او د هغې ټولنې خلک ئې بدلون ته آماده نه وی بلکه د عرف او عاداتو په ساتلو کی مجادله کوی . برعکس په متحرکه ټولنه کی د عرف او عادات بدلون ژر تر ژره منځ ته راځی او د هغه ټولنې غړی د بدلون د پاره آماده دی .

په بل عبارت د عرف او عاداتو ځنګوالی د جامعې ثقافت شاته غورځوی او د عمومی تحول مانع ګرزی برخلاف د دې په متحرکه جامعه کی د رسوماتو بدلون د جامعې د تحول او ارتقا سبب ګرزی .

عرف او عادات د حقوق د نقطې نظره داسې تعریفوی : چی عرف او عادات د یوې ټولنې عبارت د هغه صفاتو څخه دی چی یوه ټولنې پر مادی شرایطو اتکا ولری، څو هر څو مره چی مادی شرایط تغیر وخوری عرف او عادات هم تغیر خوری .

د عرف او عادات د رلونکی د درو مهمو خواصو خاوندان دی چی په لاندی ډول شرح ورکول کیږی .

۱- متداوم: عرف او عادات باید په یوه ټولنه کی په مسلسل ډول دیری زمانی راپدې خوا یا د هغه ټولنې د خلکو په ما بین کی نسل په نسل پاته وی او کمه سکته پکښې نوی راغلی .

۲- عقید وی لزوم : د یوې ټولنې عرف او عاداتو ته باید د هغه ټولنې خلک عقیده ولري او کوم چې د خپله ځانه عرف او عادات ئې وی نه د بل محیط .

۳- اجبار: عرف او عادات د یوې ټولنې باید تر اجتماعی اجبار لاندې وی او د هغې ټولنې افراد و نه کولای شی چې د هغوی داجتماعی جبر څخه ځانو نه خلاص کی .

پورتنې تبصره په عمومی ډول د عرف او عاداتو د تعریف او وضاحت په هکله وه مگر زموږ موضوع او مقصد دلته د ګرمسیر عرف او عادات دی .

د ګرمسیر حوزه تر اوسه هم د علم او تمدن د نقطه نظره ښه ترا مخ ته نده تللې . د خلکو ژوندانه طرز او اجتماعی تقاضا ئې ساده عرف او عادات ئې پرپخوانی شکل پاته دی او تحول لږ پکښې لیدل کیږی که کم تحول پکښې راغلی دی هغه هم ډیر لږ دی .

د عرف او عاداتو د نه تغیر سبب په هغه ځای کې دادی چې د هغو خلکو ذهنیتونه په عمومی ډول نه ترا ندې مترقی شوی. ځکه نو اکثره خلک ئې د پخوانی رسوماتو او عنعناتو طرفدار دی مگر سربیره پردې اکثریت دخلکو په هغه ځای کې ددې طرفداره دی چې زاړه عرف او عادات دی پرځای پاته شی بیا هم یو طبقه خلک چې تقریبا د ۳ څخه تر ۵ فیصدو پورې سته او ددې طرفدار دی چې د ژوندانه اکثره مادی شیان لکه کالی خوراک ، استوګنه ، آلات آسباب او د ژوندانه نور وسایلو او کاروته تغیر ورکی او د غه رنګه زاړه او بی ځایه رسومات د منځه درک کی داطبقه عالمان او بعضې نور د سالم فکر او ښه ذهنیت خاوندان دی .

د عرف او عادات موضوع ډیره لویه او د ژوندانه مختلف شیان په بر کی نسی نو دا موضوع پر مختلفو عنوانو په ور وسته پاڼو کی راولو .

کالی (لباس) خواړه او د استوګنې ځایونه :

د هلمند د ناوې دوطن والو خلکو لباسو نه او خواړه د استوګنې ځایونه د ټولو منطقو بیله دولایت د مرکز (بست) او ګرشک څخه لږ فرق سره لری .

د شمالی برخو (کجکی موسی قلعه، نوزاد) کالی او کورونه نسبت د هلمند وجنوبی برخوته لږ اندازه مترقی دی .

د ګرمسیر منطقه وجنوب ته د هلمند واقع ده د کالی اغوستلو طرز ، کورونه او خواړه ئې ډیر ساده شکل لری د ګرمسیر شمالی برخه نسبت د جنوبی خواو ریګستانو ته د پورتنیو شیانو د نقطې نظره ښه ده د ښه والی سبب ئې دادی چې د یوه طرفه ولسوالیو ته نژدې دی او د بله طرفه د ګرمسیر بازار د منطقې په شمال کې دی او هلته د کندهار بست او نورو ځایو څخه خلک راځی غنم وړی ، او نور شیان د تجارت په ډول راوړی چې د دوی د تماس د شمالی برخې پر خلکو اغیزه کړیده .

دریم علت ئې دادی چې د ګرمسیر په شمالی برخه کې ددرو کالو د پاره یوه مهمه پروژه د کانال د کیندلو او د رویشان د پله او سړکانو د جوړولو کار شروع شوی چې په حدودو کې ددرو زروتنو کارګر وهلته کار کاوه نو طبعاً ئې د ګرمسیر د شمالی برخې پر ټولو شیانو اثر واچاوه ځکه ئې د لباس خوراک او د استوګنې په ځایو کی نسبت د ګرمسیر و آخری برخې ته ښه تغیر راغلی .

پورتنې دری شیان چې د ژوند لمړنی اړتیا وی بلل کیږی په ګرمسیر کی په لاندې ډول دی .

لباس :

د هلمند د ناوې وطنوال خلک بېله دولایت دمرکز (بست) اود ګرشك دښار څخه تقریباً د ز اوښځو لباسونه دجوړښت د

نقطی نظره یو شکل لري دګرمسېر د خلکو لباسونه هم دهلمند د محلاتو دخلکو په شان ډېرساده شکل لري چې مفاد ئې لېږ او

دصرف ئې نسبت دهغوی داقتصادی وضعې ته ډېر ردی . ګرمسیر د منطقې دبزګرانو اومزدورکارو

بلکه دټولو خلکو بېله خانانو او ملاکانو څخه چې په هغه ځای کې ژوندلري دکالوطرز ئې پدې

ډول سره دی کالي ئې دسپین سان یادرنګه تورکرانو څخه لکه خړ، نسواری فولادی او نورو رنګو څخه دی. دوی کمیسونه دڅلور یاڅلورنیم ګزه ټوکر څخه جوړ

وی چې اوږدوالی ئې ترزنګانه پوری رسیږی لمن ئې پراخه

ترڅخې لري غاړه ئې په اوږو کې تړل کیږي لستوڼي ئې پراخ او اوږده دی چې اوږد والی ئې اکثره د لاس دګوتو ترنوکانو رسیږی.

(عموماً په آخترو کې) دځوانانو او هلکانو دسپینو کمیسو څنګرونه په شنو او رنګه وریښمو خامك

شوی وی پرتوګونه ئې اکثره سپین سان یابل ډول ټوکر څخه

وی چې د۷ څخه تر۸ ګزو لوی والی لري اوږدوالی ئې د

پښو تر بجلکو پوری دی د پایڅوخولی ئې پراخې دی بزګر او مزدورکاران

ډېری صدری نه آغوندی او که ئې آغوندی هم داختر په ورځ ئې آغوندی د کرتی د اغوستلو سره چندانی

عادت نلری د صدری د جوړښت طرز ئې کندهاری دی، دسپین سان په جوړه

کړی خولی باندی ئې دسپین یاتوری خاسی لنګوټه چې پنځه ګزه اوږد والی لري

تړلی وی دټکردرې تاوې سره ګنډلی اوپر اوږو

باندی ئې اچوی چې لمونځ هم باندی کوی دغه ټوکر ته

(پټو) وایی پټو په دوبی پرځانوهم دخوب په

وخت کې دشپې یادغرمی دخوا اچوی کوسی دوړیو

څخه دکراستی (لمڅی) په ډول جوړیږی چې عموماً

ئې رنګ سپین دچپینی شکل لري دالباس دهلمند دناوی

د کلیوالی ښځو د خوا جوړیږی. دکوسی څخه په

سفرکی دشپې دخوا دتلتك کارهم اخیستل کیږی .

په دوبی کې بزګره طبقه عموماً مختلف شیان لکه موچنۍ څپلی چاروغی (چې دوړیو او

رېږ څخه جوړیږی) بوټ اوربړی

چوټی په پښو کوی میرمنی ئې سربېره پروطنی افغانی کالیو دسپینوزرو ګیڼی لکه پېزوان،

غاړه ګی، اوږده وښی، ګتمی، والی، چهارګل او نور شیان هم استعمالوی مخصوصاً په

ښادیو اووطنی میلوکی داختر

په ورځو کې ډېری ګیڼې اود بخمل کمیسونه چې په هغه منطقه

کې ښه شهرت لري اغوندی او زرینی دګلابتنو موچنۍ ورسره

په پښو کوی ، سربېره پر دغو لباسو بیا هم هلته یو تعداد

ځوانان ملاکان اومتعلمین او منوره طبقه موجوده ده چې د

لباس په جوړولو اواغوستلو کې دښار د خلکو تقلید کوی اود

پخوانی طرز څخه ئې خپل لباسونه اړولی دی .

(خوراړه)

دګرمسېر خلک ساده اوبی تکلیفه خوراك تهیه کوی غریبه

طبقه ئې چې اقتصادیات ئې دلاس

په مزد تکیه دی د بزګری یا ورځنۍ مزدوری څخه خپل اعاشه

کوی. د پسودغوښو ښوروادغوښو سره خوری په دوبی دګرمی له

کبله د غرمې د خوا مستې يا شلومبې دغنمو د ډوډۍ سره خوري دسهار دخوا خوږې چاې هم څښي دژمي په موسم کې د بعضي غريبو خلکو په کورو کې لاندې ياشکنه پخيږي .

د گرمسير کې ځينې خوراکونه سته چې په مختلفو موسمو کې د کال لکه په نورو ځايو کې خوړل کيږي دهغه جملې څخه دژمي

په موسم کې د پسه وچې غوښې (لاندي) دي چې دهر ملاك په کور کې وي ، مگر بعضي غريبان خلك هم لاندي کوي، په دوبي

کې مستې ، شيدې ،شلومبې ، کچې اوربه، پوڅه، چکيده، داکثرو خلکو په کورو کې چې د ځانو

غواوې لري سته اونور کسان هم دشلومبو څخه دهغوى بېله کومه قيمته استفاده ځني کوي او اکثره بزگران دځانو غواوې او

ميږې لري چې دپورتنې شيانو څخه ئې د دوبي په موسم کې

استفاده کوي، په ژمي کې کرت اوغوړي مهمه غذاده هر څوك ئې هلته خوښوي شيدې اوغوړي هم هلته د ژمي غذاده . مگر

(خرېړي) چې دشيدو اوشلومبو ترتيب شويدي په دوبي کې خوړل

کيږي. (نخړي) هغه غذاده چې کچې داېشيدلو څخه وروسته د

ديگ په بيخ کې دشلومبو او کچو مخلوط يو اندازه غټې غټې سپين شيان پاته سي

هغوى ته بيا نورې مستې وراچوي اوايشوي ئې چې پسله څه وخت ئې را واخلي (نخړي) ورته وايي او

دغرمې ياشپې په وخت کې ئې خوري .

پر پورتنيو خوراکو سره هلته ميوې اوسبزيجات (سابه) اونور هغه مواد چې ډېر ويټامينونه ولري لکه

رومي بانجڼ توربانجڼ او بادرنگ چمبر خيال خټکي هندواني ، مثمره وني اود

هغوى ميوې لکه زردآلو شفتالو، انار، ناك، سيب

بهي اونور هلته چنداني نه ليدلې کيږي، د انگورو

باغونه لږلږ ليدل کيږي د نورو ځايو څخه راوړي، د

اوموپخو سبزيجاتو خوړل لکه پالك، کاهو او کيرم کريله هلته رواج نه لري .

د گرمسير دخلکو دساده خوراك سبب دادى چې هلته ديوه طرفه خلك د ډېرې

زماني راپدې خوا دنورو ځايوسره په تماس کې نه ؤ اونه د نورو ځايــو خلك

هلته ور تلله سبب ئې د لارې خرابي او عدم وسايل وه موټران نسواى تللاى پرپښو او چهارپايانو باندې هغه منطقه

ته ډېره ليرې وه دوهم علت ئې د هلمندرودؤ چې پرهغه باندې

پل هم نه ؤ دهغه ځاى خلك بېله شديده ضرورته گرشك ته چې د هغه وخت د حکمران مرکز ؤ راتله ځکه نود باغو جوړول اود

مثمر وونو کښېنول ئې په فني ډول نه وه زده .

مسکن (داستوگنې ځايونه په کليوالي بڼه) :-

د کورنو د تعمير (جوړښت) د نقطې نظره د هلمند د ولايت شمالي منطقې نسبت وجنوبي

مناطقو ته بډه دى د جنوبي خوا کورونه چې گرمسير هم په هغه برخه کې راځي دجوړښت دنقطې نظره چنداني مصرف نه غواړي

ځکه چې ددوى ژوند ډېر ساده او کورونه ئې هم په ساده شکل جوړيږي . هلته داستوگنې دځاى

(کور) پيدا کول او يا جوړول د ژوند مهم پرابلم نه دى او نه کورونه په دائمي ملکيت کې د

خلکو راتلاى شي . بلکه دځومدى دپاره دى بيا خلك هغه ايله کوي .

(نور بيا)

ژباړه کوونکی: عزیز احمد «ترقی»

# مځـــــــکه
# په څه شکل ده

پدې خبره هر څوك پوهیږي چې ځمکه د کرې په شکل سره ده او په فضا کې حرکت کوي په پخوا زمانو کې به خلکو ویل: چې ځمکه سطحې اولږ نیمګوله یعنې لکه د جنګك دسپر داسې شکل لري. پدې باره کې چې ځمکه پر څه شي تکیه ده هر قوم مختلفې عقیدې درلودې

د پخوانیو هندیانو په عقیده چې ځمکه یوه غټه نیمکرۍ ده چې د څلورو پیلانو پر اوږو باندې ولاړه او پیلان بیا د یوه غټ کیشپ پر شا باندې ولاړ دي پخپله د غو خلکو چې دغه عقیده درلوده پدې نه پوهېدله چې کیشپ پر څه شي ولاړ دی، پدې وروسته وختو کې دیوه پلار او زوی ترمنځ خبرې کېدلې چې زوی له پلاره پوښتنه وکړه:

باباجانه! ځمکه پر څه شي ولاړه ده؟

پلار ئې جواب ورکړ؛ چې پر ماهي! زویکه ځمکه پر لویو لویو ماهیانو باندې ولاړه ده کله چې ماهیان وخپل ځان ته حرکت ورکړي ځمکه په تکان راځي.

باباجانه! ماهیان پر څه شي ولاړ دي؟

زویکه! ماهیان په اوبو کې آب بازي کوي.

باباجانه! اوبه چیرې دي؟

زویکه: اوبه د ځمکې پر مخ دي.

زوی: آیا نو ځمکه پر څه شي ولاړه ده؟

پلار ئې: رشتیا ته ډېر احمق هلك ئې! وتا ته مې و نه ویل چې ځمکه د درو ماهیانو پر شا ولاړه ده، د غه مباحثه تر اوسه هم وپای ته نه رسیږي.

دا څه عجبه نده چې پخوانیو خلکو د ځمکې په باره کې داسې فکر کاوه چې ځمکه یوه هواره سطحه ده.

بلکه د تعجب پدې کې دی چې څنګه ئې وکړای شوای چې ځمکه ئې په هغه خپل حقیقي شکل کشف کړل.

معلومه خبره ده چې د ځمکې د حقیقي شکل کشفوالي په زرو زرو کلونو په برکت ئې نوي آمادا کار د اوږدو مسافرتو په ترڅ کې دی کرار کرار آسانه شو.

د ځمکې پر شا و خوا باندې د خلکو مسافرتونه د ډېرې پخوا څخه راشروع شویدي د ځنګلونو او راخیستلو، د دریابو طغیانو، سیلابو، قحطیو، اووچ کالیو، یخونو او نورو آفتونو دوی دې ته مجبوره کړل چې دیوه ځای په څه وبل ځای ته کوچ وکړي لومړنیو انسانانو خپل مسافرتونه ډېر کرار او په ځنډ سره پای ته رسوله.

نه به داوي چې د مسافرت د کلمې پر ځای د مهاجرت کلمه استعمال کړو، په هر حال کې چې مهاجرت په کلو اوږدېدې خلکو په زرو زرو کیلومتره فاصله طې کوله.

په تاریخي دوران کې خلك دراکړې او ورکړې دپاره دیوه ځایه څه وبل ځای ته تلل!

دحیوانانو د پوستو ښکاریانو د حیواناتو پوستونه ئې د تورو، خنجرو، چړو او لوښو سره تبادله کوله بزګرانو بیاغلې او دانې په کالو او نورو شیانو تبادله کولې .

دا رانکړه او ورکړه دیو طبقې لخوا کیدل چې دغه ئې کار ؤ چې د یوه مملکته څخه به ئې شیان وبل مملکت ته وړل او په عوض کې به ئې نور شیان څنې راوړل چې تاجران نومېدل دا وظیفه ئې پای ته رسوله .

دغه تاجران ډېر دلاوره خلک وه او دوی د خپلو مسافرتو په ضمن کې مجبوره وه چې د هغو وحشي او درنده حیواناتو څخه ځان وژغوري کوم چې دوی ته خطر ور پېښوی او

دهغو دښمنانو سره چې ددوی مالونه او نور شیان په وچه او دریاب کې تالا او چپاو کوله جنګ وکړی .



دې تاجرانو هم په وچه او هم په لویو دریابو کې دکوچنیو کښتیو په واسطه ولیری ځایو ته

سفر کاوه .

تقریباً ۷۰۰ کاله پخوا یو ایټالوی تاجر چې مارکوپولو نومیدی دوینز له ښاره څخه چې په ایټالیا کې واقع دی وچین ته مسافرت وکړ . اودلویو غروڅه راکښته چې څوکې ئې

آسمان ته رسیدلې اودهغو وچو او خطرناکو صحراؤ څخه تیر شو او چین ته ولاړی څو مدې

وروسته دجنوبي آسیا دسواحلو له لاری د کښتي په ذریعه بیرته وخپل مملکت ته ولاړی

مارکوپولو خپل دز پړېدنې ځای په ځوانې کې لا پرېښودی ۲۵ کاله ئې دخپل مملکته څخه دباندی تیر کړه او په سپین ږیرتوب کې بیرته خپل مملکت ته ولاړی . مارکوپولو (۱۷) کاله

په چین کې ژوندو کړی او (۷) کاله ئې په تنګ اوراتګ کې پرلاری تیر کړل . مارکوپولو چې بیرته وینز ته ولاړی ښه ډیر عمر ئې وخپل ژوند ته ادامه پسې ورکړه اود چین دخلکو دژوند په باره کې ئې هغه وخت یو کتاب نوشته کړی .

دوه سوه کاله وروسته یو روسی تاجر چې (آفاناسی نیکیتین) نومیدی، د (تور) دطائفې څخه وشرق ته مسافرت وکړی .

نیکیتین د روسیې دشمال څخه حرکت وکی اودایران دلاری وهندوستان ته لاړی او (٦) کاله ئې په هندوستان کې تیر کړل اودخپل مسافرت شرح ئې په خپل یوه زړه

پوری کتاب کې چې (سفر ددریابو وخواته) نوشته کړه . په هغه وخت کې دیوه ځایه څخه تګ وبل ځای ته ډېره موده په بر کې نیول

نن ورځ چې یوه لار په یوه هفته کې طی کیږی هغه وخت په کلو کلو طی کېدله هوائې خطونه داوسپنې لاری اودبخار کښتیې د سفر

د پاره وجود نه درلودی .

تاجرانو وچه‌لار د آسانو او اوښانو په ذریعه او دریابونه ئې د کوچنیو کښتیو په ذریعه طی کوله .

ډیر خلکو برسیره پردغو تکلیفو اوږده مسافرتونه کول آماهغه خاطرات کوم چې دوی ورسره مخامخ کیدل ژرئې له یاده وتل او هغه کسان لکه مارکوپولو او آفاناسی نیکیتین چې په لیکلو اولوستلو پوهیدل او

کولای ئې سو ای چې هغه واقعې او حادثې چې‌دوی ورسره مخامخ کیدل نوشته کړی اوداکسان په‌هغه‌وخت کی ډیر لږ اومحدوده

هرڅو مره چې به ئې سفر او ږد پـدی لاتې کوښښ کاوه چې‌لاډیرځایو نه وویني .

هغه وخت چې دمځکې نقشې ومنځ تـه راغلی‌بنه‌تر ډیره وخته پوری صحیح اوپوره نه‌وی. که‌هغه‌زړې نقشې پیداشي دغاب‌شکل لری. پرټولو وچوئې‌د(اسناسوس) رودخانه

راګرځولې وه. چې ددغه وچو په‌منځ کی یو لوی دریاب‌ؤ چې حتی پخوانی خلک ئې‌هم پیژنی تاجران‌اوجنګی کښتۍ او دریا بی‌غله

له‌دغه دریاب له‌لاری څخه تیرېدل. دمدیترانی لغات‌ددؤ یونانی کلموڅخه جوړسویدی چې په معنی سـره د منـځ او د وچـې د ی

ځکه‌چې‌خلکو عقیده‌درلوده چې دغه دریاب دنړی په‌منځ کی واقع دی .

نن‌ورځ ټوله‌پدې خبره پوهیږی چې دا خبره سیمه نه‌ده آما‌اوس هم‌هغه دمدیترانی په‌نامه یادیږی .

دنن ورځې په جغرافیائی نقشو کی هغه خطونه چې‌دمدارو او نصف‌النهارو په نامه یادیږی داخطونه زمونږ سره ډیر کومك کوی اوکولای‌شو چې دمځکې د کـری هره نقطه معینه کړو .

داخطونه پـه خپلو ‌خصوصو علاموسره ۱۸۰۰ کاله دمخه اختراع شویدی .

بطلیموس دیونان‌یوپخوانی منجم‌دجغرافیا په‌باره کی‌خپلی ټولی‌اطلاع‌وی‌سره راټولی کړی اویوداسی نقشه‌ئې جوړه‌کړه کوم چې یونانیانو اوددوی همسایه‌ګانو تصور کوله

پدې نقشه کی د اروپا ټوله مملکتونه اوپه استثنا کی صورت‌دهغه‌شمالی حصې اود آفریقا شمالی برخې اود آسیاهغه‌برخې چې‌لیدلی ئې وی‌شاملی وی .

بطلیموس داسی‌عقیده درلوده چې مځکه ګردی‌شکل‌لری او چارچاپیره ئې فضاده .

ډیری‌فیړی‌ تیری‌شوی هغه‌یونانی نجوم ګران‌هم سره کم‌شوه اوددوی لیکنې هم‌سره ورکی‌شوی نوخلکو بیادوهم‌ځل دافکر کاوه چې مځکه یوسطحی‌شکل‌لری، کشیشانو چې د

جغرافیې دعلم‌څخه فایده‌اخیستله اوخلك به ئې‌دې نظریې ته رابلله دپنځلسمې پیړی په نیمانۍ کی‌چې بـه‌خلك ددریابو اوږدوسفرو

ته‌تلل ودوی ته به‌ویل کیدل چې پدې کار کی لاس‌مه‌وهی لیونی کیږی ځکه‌چې پدې کار کی‌دهغو کشیشانو درواغ رسوا کیدل‌وه نو همېشه‌د... طبقه غواړی چې‌خلك په دغو درواغو خطا باسی .

دهغې زمانې خلکو پـدې ټینګه عقیده درلوده چې مځکه همواره اوسطحی ده او چارپیره ئې داسناسوس رودخانې دی چې د پوه‌لوی آبشاره‌څخه وپوې بې پایه کندی ته توئیږی .

او که کښتۍ د ځمکې تر څنډو پورې ولاړه شي نو بېشکه په هغه کنده کې لوېږي او ورکېږي .

حتی په هغه زمانه کې هم عاقلان وه لکه بطلیموس ده په هغه زمانه کې داعقیده درلوده چې ځمکه ګردي او ګرۍ په شکل ده نه سطحي او همواره .

هغه کسان چې دلیر و سفر و مخالف وه نو به ئې ویل: (ډېر ښه ! موږ ئې قبلوو چې ځمکه ګردي او ګرۍ په شکل ده، آما که کښتۍ د لوېږي وکښتۍ ته ولاړه شي آیادراتګ امکان ئې پیاشته نو بیا نسي کولای چې د کښتۍ څخه ولوېږي ته بیر ته ولاړه شي) .

آیا دې خلکو اشتباه چیری ده: دوی دا تصور کوی چې د ځمکې په لوړه کې د غرو پر سر وژوند کوی .

بی مناسبه به نه وی چې یوه کوچنۍ قصه پدې باره کې وکړم .

په یوه زمانه کې به یوه داسې کلی کې چې د ځمکې څه یو څه لوړ ؤ دوه دوستانو ژوند کاوه چې یو ئې نړۍ ګرزېدونکی (جهاندیده) او بل ئې داسې سړی ؤ چې بېله خپله کوره څه ئې بل ځای نه ؤ لیدلی نو دې ته موږ نړۍ نه ګرزیدونکی وایو ژوند کاوه .

نړۍ نه ګرزېدونکی به همېشه د خپلو دوستانو سره ناست ؤ .

او نړۍ ګرزیدونکی به همېشه د یوه مملکته څه و بل مملکت ته تلی، ځکه چې ده غوښتله چې د ځمکې پر کوره باندې را وګرځی .

او دا نړۍ نه ګرزیدونکی به همېشه غوښتله چې دده په زړه کې بېره او هول ور واچوی .

د زړه څه به ئې آه وکښې و به ئې ویل:
ته غواړې چې د ځمکې لاندې ولاړ شې او د هغه ځایه څخه ځان د آسمان و منځ ته ارتاو کړې .

آما نړۍ ګرزېدونکی ډېر دلاور ؤ او خپل رفیق ته ئې جواب ورکړ او وویل :

په هر حال چې وی زه خو اوس ځم او که پسله دروکالو را نه غلم نو ئې ته داسې انګیره چې زه مړ یم ... په دغه ترتیب نړۍ ګرزیدونکی وخپلی لاری ته دوام پسې ورکړ پدې ترتیب ډېر مملکتونه ئې ولېدل او پر له پسې پسوې خواته ئې هر ځای ته چې تلی تر ښو لاندې ځمکه او پر سر ئې آسمان ؤ شاید ده د مخه د ځانه سره دا فکر درلود چې د ځمکې څه به و آسمان ته وخېژم .

آما دا څنګه کېږی چې آسمان دی زما پر سر قرار ولری او زه دی پسله کومې آلی ور وخېژم ؟

نړۍ ګرزیدونکی د خپله ځانه سره په فکر شو؛ (زه څنګه احمق وم چې فکر می کاوه چې زموږ کلی د ځمکې پر لوړه دی. اوس معلومه شوه چې هو له ځایو نه پر لوړه دی رشتیا که دغه حقیقت وخپل رفیق ته ووایم څومره به په تعجب شی) .

پسله یو نیم کاله نړۍ ګرزیدونکی عقیده درلوده چې و هغې نقطې ته رسیدلی دی کوم چې مقابل د هغه کلی کوم چې دی پکښې زېږیدلی دی .

د ځانه سره ئې وویل: ډېر ښه دی! اوس زما پښې او د نړۍ نه ګرزیدونکی پښې یو بل ته متوجه دی زموږ سرونه یو د بل په مخالفه خوا کې واقع دی .

(نور په ۲۲ مخ کی)

تو ماس مور

# پخوانی ورځی

· توره شپه ده ....!
دخوب څپی را باندی راځی..!

خاطرات می د نورو ورځو
رڼا ښئی ...!

د کوچنی توب دوختو...!
دهغه وخت خندا وی او
اوښکی..!

دمینی خبری ..!
دهغه وخت سترګی خو د
مینی څخه ځلیدی...!

خواوس لیدل کوی...!
د هغه وخت خواپسا کی
زړونه...! چی اوس وچ شوی
دی ...!

داسی نو... پهغلی شپه ...!
خوب رآ باندی راځی...!

اودغم خاطری...!
د پخوا ورځو رڼا ....!
راته کوی ..!

د پیغلی (رڼا) ټاکنه



[ شیلی ]

# چی ډیوه مړه شی

چی ډیوه مړه شی ،
رڼا په تورو خاورو

ولړ له شی ، چی اوریځی
ولاړی شی ، دشنی زرغونی

ښایست ورك شی ، چی سرېنده
ماته شی ، نغمی هیری شی!

☆☆☆

موسیقی او ښایست د
ډیوې او سرېندې تر
ورکیدو وروسته نه
پاتیږی ..

☆☆☆

چی اروا پټه خوله وی ،
پرزړه هم خوږی بدلی نه
راځی !

☆☆☆

بلکه وېرجنی ناری
ځینی خیژی ، لکه د باد
بزکی په ورانه کوټه کی !

☆☆☆

یا لکه د دریاب د څپو
بغ ، چی فردیسان دمرګ
غبرږ ور کوی !

# د مور لفظ

دمور لفظ د دنیا په شلو مختلفو ژبو کی د (م) په توری شروع کیږی لکه چی د آریانی په ژبه کی ما او د سانسکرت په ژبه کی (ماتا) او په فارسی مادر او په یونانی میتر ، په بلغاری ماتی ، په هسپانوی مادر ، په روسی میت په لاتینی ماتر ، په پرتګالی مادر په ایټالوی مادر ، په پولنډی ماتکا ، په جرمنی موتر ، او په فنلانډی دمویدر او په هالینډی مویډر ، او په سویډنی او ډنمارکی مودر ، او په آئسلنډی مودسیر ، په آیرلینډی ماتهیر او په پروانتهال پاپرووانسی میر او په لیتوانیانی موت ، او په انګلیسی مدر ، او په پښتو مور او ځینو نورو ژبو کی هم د مام ، ماما مامی ، موم په نامه یادیږی .

مینه دځان د پاره ضعیف زړه خوښوی ، لهغښتلو زړو څخه وزی !

اې مینی ! تاولی دځان دپاره ضعیف زړه ټاټوبی غوره کړیدی ؟

☆☆☆

د بی وزلو زړونه داسی ښوروی ، لکه صرصر چی بڼی په فضا کی الوزی !

لکه لمر چی دژمی په آسمان کی سوړوی ، یا لکه په سړو سیلیو چی پاڼی رالویږی ته هم پرزړه دغسی حکمرانی کوی .




ښاغلی پژواک

# د هجران په لمبو وسومه ایری شوم

د بیلتون له لاسه عمر می په دار دی
دژوندون پیټی می درونډ په اوږو بار دی
خندنی شوم درست دښمن را پوری خاندی
ای زړګیه را ته ژاړه نن دی وار دی
د هجران په لمبو وسو مه ایری شوم
چی زما سره د مینی نور څه کار دی
په هیڅ فصل کی می رنګ دزړه ورانه اوښت
نه پوهیږم چی دا ګل د کوم بهار دی
یګانه زړګی می ډېر مطلب آشنا ؤ
چی مطلب می د آشنا شو اوس می یار دی
اوردی مړ دی اوس دی هسی سترګی ژاړی
ای «پژواکه» زړه دی خوشی ناقرار دی

---

خالي ورقه

پر صفحه دی د سپین مخ سطری د ورځو
نه رسیږی څوك د دې و مضامین ته
ستا د مخ ګلستان هسی مستغنی کړم
چی حاجت هیڅ نه لرم خلد برین ته .

ښاغلی سلیمان (لایق)

# د خولو باران

ژړوی می تیر یاد و نه د شباب
زه که څه یمه د غرو نو ځیر افغان

یو ځل دومره مهلت راکړه چی او به کړم
ستا د شونډو په شربت تږی ارمان
پرېږده؛ پرېږده چی را وسپړی ګلونه
د اتیره ، تیره اغزی د بیابان
که لاسونه د باغبان وای خوځیدلی
لا به خوا په دا بیدیا وه ګلستان
هره لویشته ئی د میڼی منزلګاوه
دا وطن چی اوس لوڅ شوی او عریان
هره تیږه د وطن پڅو ته ژاړی
خو افسوس چی څوک یی نه اوری فغان
د ږمو او مارانو په ځای پرېښې ده
چی خواره شی سندر غاړی بلبلان

هره څنډه به یی رشک د فردوس شی
که یی سم شی د خولو ګرم باران

---

# زړور زړه

که لایق د خپل هیواد وفادار نه وای
هسی رنګه به هیر شوی او خوار نه وای

که می زړه د زړوزو په لار نه تلای
هر طرف به یی د تورو ګذار نه وای
که می بوغ د خلکو نه وای اوچت کړی
د تورونو په چپاو په آزار نه وای
شاعری ته به می لاس نه وای وروړی
که می قام سره د زړه اختیار نه وای
زمانی که زما درد وای ازمویلی
هسی رنګه به ساکت او کرار نه وای
ما به څله تاو داور ته زړه نیولو
که له ژوند سره می خیال د قمار وای

ښاغلی (الفت)

# انسان

زه جسم نه یمه ما روح د دې جهان وګڼه
ډېر مې مه بوله بام دخوني مې آسمان وګڼه

دخاورو ګټو په تخت ناست یم په هوا کې ګرزم
ټول حیوانات مې دي تابع ما سلیمان وګڼه
تیاره کې نه یم په آسمان کې مې ډېوه بلیږي
د آسمان واړه ملایک مې شاګردان وګڼه

دا ټول نقشونه د جهان او مختلف رنګونه
زما په ذوق او ارادې پسې روان وګڼه
په کائناتو باندې شپه او ورځ زه لوبې کوم
بحر و فضا مې د لوبې منلی میدان وګڼه

شکایت نه کړم له آسمانه څه ګیله نه لرم
زما له لاسه د فلک څیري ګریوان وګڼه
سره له دومره اقتداره چې قدرت را کړی
په نرۍ تار کښې مې د زلفو اوېزان وګڼه

دعشق او مینې په حرم کې زه لوی شوی یمه
څوک چې بې مینې ژوند کوي هغه حیوان وګڼه

چې د جمال ډېوه شوه بله پتنګان شوه پیدا
لومړی پتنګ د دغې شمع ته آسمان وګڼه

# څلوریځه

عاشقان چې بیدردانو ته حال وایي
لکه مېږ چې قصابانو ته حال وایي
خوله لږ لې په شرابو پټ سر ګرزم
سترګې سرې مې و قاضیانو ته حال وایي
مرحوم عبدالستار (خوږمن)



# د ګل مخ

چهره د ګل شوه شمع افروزه
چې په موسم دی خوبان هوس کا
بلبل چغار کاله د رد ه سوزه
تر هوا جار شم د تا نو روزه

☆☆☆

پیسد ا تنها یم زه لکه شمع
اوښکې مې څاڅي په شپه لوسوزه
عرض پر قنا یم زه لکه شمع
لوند سر تر پا یم زه لکه شمع

☆☆☆

پر کوڅه تیرشه د یار شماله
که در ته وایي اوس حال نې څه دی
قصه بیان کړه زما له حاله
وایه بلبل دی بې پر و باله

☆☆☆

زه په خاطر کې دعشق څراغ لرم
فراق مې زړه په داغو نو وینو
مدام په ګنډلیو پسې سراغ لرم
جوړ په سینه کې د ګلو باغ لرم

☆☆☆

زړه مې نادان و، دمینې غل شو
راحت مې واړه په غم بدل شو
فراق نې اور ؤ را باندې بل شو
اوښې سیلاب دې صورت مې سل شو

☆☆☆

په باغ کې شخول دی بیاد بلبلو
رضادې ګنېږدې آخر په سولو
ثنا صفت کا د تا زه ګلو
چې باندې جوړ دبېلتانه چل شو

☆☆☆

د صبا باد ه سراغ د ګلیو !
(پیر محمد) پټ کړ د آه دودونو
یوځل خورا وړه تر کام و ګلیو
په اور کې وسو فراق د ښکلیو

پیر محمد (کاکړ)

# څلور پڼځه

ستا د شونډو په څېر ګله دی د ګل رنګ
دا جلوه کاندی یورنګ هغه په بل رنګ
که هر څو سو پیچ و تاب له ورره رشکه
ستا د زلفو په څېر نه سو د سمبل رنګ

(حمید) ماشوخیل

(ځارو)

# بی پروا به دی و مخ ته پروانه شم

که رعنا شم که زیبا که جانانه شم
ستا و مخ ته به آشنا شانه ورانه شم

که ساقي شم د شرابو میخانه کښی
شراب څه چی زه به تا ته پیمانه شم
که غنچه شم د سرو ګلو له هوسه
ستا په غیږ کښی به آشنا د ازه دانه شم
زما زړه چی ستا د مینی په دام بندشو
ستا په عشق کښی به د خپلو بېګانه شم
که دی مخ په شان د شمعی سوځیده کا
بی پروا به دی و مخ ته پروانه شم
که خوله دی د شفاء پر تنده ی راغله
هغه دم به دی و مخ ته شکرانه شم
زما د ډاډ په بهار ځان تازه که
چی بورا د ښا ئسته مخ ښیانه شم

که رقیب را ته «ځارو» شی پروا مه کړه
و رقیب ته به د زجر تازیانه شم

# څلوریځی

په پوه د یبد آیني راڅخه پو ر کړ
د ګلی دولت چی زما د حیرانۍ ؤ
که هرڅو میخانی غواړم نه ئی مومم
هغه می چی به پیاله کښی د ځوانۍ ؤ
(حنان) بارکزی

چی مستوته مباح کاندی په میو لمبیدل
اوس وایه ملاجانه چی کتاب لری که نه ؟
راغلی یم دا خپله د نیا ګی لاهو کوم
دې خم کښی قطره نیمه شراب لری که نه ؟
(اجمل خټک)



# ګی دوموپاسان (۱۸۵۰-۱۸۹۳) دنړۍ د مشاهیر و په لړ کی

دفرانسی د۱۹ پیړی معروف لیکوال (هانری انرالبرت ګی دوموپاسان) په۱۸۵۰ کال کی د(میروما نسیل) په ښار کی زیږیدلی دی. ده خپل تحصیلات د(ایوتو) په کالج اود (روآن) په پوهنځی کی پای ته ورسول او پوره لس کاله ئې د سمندرونو او پوهنی په وزارتو کی کارو کړ.

په ۱۸۸۰ کی ئې د(شورادومدن) په ورځپاڼه په کار پیل وکړ اود خپلو اشعارو مجموعه ئې خپره کړه دده اشعار چې په هغه وخت کی دده د کامل استعداد معرف وه ډیر ژر دخلګو په زړه پوری ومونښت ګی د و مو پاسان په ناول لیکنه کی پوره لاس درلود او کوم

آثارچی ئې خپاره کړی هغه نه یوازی په هغه وخت کی په ملیونو ملیونو خلګو خوښول بلکه تر ننورځی پوری ئې زړوالی نه دی قبول کړی. کوم معروف داستانونه چی له ده څخه پاته دی هغه دادی: یوژوند، قوی لکه مرګ، زما زړه په لمر کی، دمیس هاریت ننداره دسپو ږمی رڼا، دپوپ کلیوالی نجلۍ داستان، بل آمی، مونا وریول هورلا پیروژان.

دډرامو په لیکنه کی هم ګی دوموپاسان څخه یوشمیر آثار پاته دی چی تر ټولو مشهور ئې (په کورکی صلح) او (موزوت) څخه عبارت. په اشعارو کی ددې معروف لیکوال ډیر مشهوری پارچی دادی: مادمو دموازل فی فی، مورون خولا داوندلی خوندی، د بکاس نکلونه، ګی دوموپاسان په داسی حال کی چی په خپل ادبی خدمت کی سخت مشغول ؤ ناڅاپه په روحی ناروغی اخته شو او وروسته پسله څو کاله د حواسو په اختلال کی ونښتیځل سو او په ۴۳ کلنی عمر کی مړ شو.

ګی دوموپاسان په ټولو معنی ؤ یوناتورالیسټ لیکوال ؤ چی اکثرآ به ئې خپل روحی حالات او احساسات په داستانو کی منعکس کول دفرانسی یو بل معروف لیکوال (لامارت) دده په باره کی داسی ویلی وه.

ګی دوموپاسان دونه قدرت لری چی تصاویر، حالات اوحرکات دعکاسی د کمری په شان په کامل دقت ضبط کړی.

# په نړۍ کی تر ټولو لویه دینی مدرسه

ویل کیږی چی دنړۍ تر ټولو لویه مذهبی مدرسه په جاپان کی ده نوموړی مسیحی مدرسه له څو کالو راپدې خوا په جاپان کی جوړه شویده اودهغی

بودجه د نړۍ مسیحان د جاپان مسیحی او غیر مسیحی بیلابیلان اویوه نوره برخه ئې د جاپان حکومت پوره کوی، ددې مدرسی

زده کوونکی دنړۍ له بیلو بیلو هیوادو څخه دی او شپه ؤ ورځ په مدرسه کی وی د دوی پلرونه او میندی ټینګار کوی چی د دوی

زامن باید ټول په یوه خونه کی هستوګنه وکړی ددې کلیژوند هدف دادی چی د دوی دزامنو په منځ کی د دینی او مذهبی یووالی

(بی دملیت له تفرقی څخه) مزی ټینګ شی. د نوموړی مدرسی دشاګردانو شمیر ۱۱۴۱ تنو ته رسیږی دنړۍ بیلو بیلو هیوادو ته ددوی

ټکټ دمدرسی د درسی پروګرامو یوه برخه تشکیلوی.

# د منی سیلۍ

لکه څنګه چې د پسرلي خوږه هوا، د طبیعت موجوداتو ته د حرکت او ژوند قدرت بخښي، او د ښکلیتوب ټولې نښې او خصوصیات د همدې موسم له برکته د نړۍ په مخ کې تمثیلیږي؛ هم دارنګه د منی ژړه څېره د ګلانو ونو او څینو نورو موجوداتو په

ښه کې دا-ی تغیرات پېښوي لکه چې د ماز دیګر ژړې لمر د توری شپې د راتلو خبر ورکوي.

د انسان ژوند هم د طبیعت په همدې فزیکي قانون ولاړ دی. لکه څنګه چې د بوټي ښکلي بوټي نه‌غوټۍ پیداشي، وشېږي او ګل

شي نو د هرچا په زړه کې ځای پیدا کړي، د باغ او بڼ ښایست زیات نو طبعي ده چې باغوان پرې ویاړي اود لیری او نږدې

خلک ورته د سیل د پاره راځي، فضا معطره او دماغو نه تازه کوي خو بیا هم د جبري قانون په اساس بیرته مړاوی‌سي، پاڼې

پاڼې رژي، او د تورو خاورو سره خاوري سي.

د ژوند په اصلي هدف پسې هغه خلک یون کوي کوم چې د هغه ګل په څېر د ښو آرزوګانو ممثله وي او خپل ژوند د نورو ژوندیو لپاره وبولي نه‌دا چې خپل ژوند د ځان د ژوند له پاره! د دې خصلت خاوندان د هغو ګلانو په شان محبوبیت لري چې باتور زلمیان ئې د ټټکیو په ولونو کې د تندی د پاسه ږدي.

ښکلي پېغلې ئې په تورو وربلونو باندي چتر جوړه وي اود نازکو سینو د پاسه ورته ځای ورکوي، نو

داسې ښکلي ښکاری لکه چې د باغ د پاسه بل باغ جوړ شوی‌وي.

☼☼☼

که څه هم د منی بیرحمه سیلۍ د دوی د ژوند سلګۍ ختموي.

خو هغه ښې خاطرې او ښکلې منظری لکه د روح جوهر به‌تل تر تله ژوندی‌وي او هیڅکله له منځه نسي تلای د دې افتخار په یاد به‌هر وخت ویاړی او ساه به‌ئې ښاده اوسي.

س، انتظار سلطانپوری

# ادب د عقل په غېږ کې

## ادب د احساس او تخیل تر اغېزې لاندې

پر هنر د احساس او تخیل د مسلط والي ډله وایي: لیکوال باید د باندنی نړۍ په تجسم کولو کې خپلو احساساتو ته اجازه ورکړی چې داخل شي په همدې شان تخیل باید عقل ونه‌تر ټلای شي. حتی پر واقعیت هم باید مسلط وي؛ یعنی د همدې فکر خاوندان عقل په هر صورت د احساس سره او یوه پر اوبه د رول غواړي یا خو بالکل په احساس عقل رټي او وایي:

(د عقل او طبیعت تر څنګ زړه او احساس بل جهان ګڼل کیږی او داړول چې وایو دا جهان هم ځانته جهانونه لري، دا ځکه چې څوک به‌لدې نه انکار وکړی چې

انسان په روح کې احساس په وارو وارو تر فکر اغیزه ناکه‌دی دلته دا هم باید ومنل شي چې حقیقت انسان د ومره ځانته نسی

جلبولای لکه هیله او آرزو (الفرد دوموشه) به په کال ۱۸۴۴ کی‌ویل: (باید پرتی یعنی هزیان وویل شي).

ده د عقل تر تسلط پرتی خوښولی او عقل ئې په هیڅ ډول پر هنرمند او هنر حاکم نه‌غوښت (دوموشه) به‌ویل: شاعر د څه‌شی ښکارندوی‌دی او څه‌غواړی.

د دې پوښتنې په برخه کې ده ته جواب دا وو. شاعر د احساساتو ښکارندوی دی اود خلکو څخه د احساساتو پارول غواړ ی.

ددې ډلې لیکوالو غوښتنه د ادب او هنر په برخه کې صرف داده چې څه وایي د وی وایي او څه

چې غواړي خو د احساساتو په امر دلته د وی د احساس د امر سره تخیل حکم هم ملګرې کوي مګر عقل دلته نه غواړي او نه هم د احساساتو او تخیل د ښور پدو منځه را ونګرځوي .

هو: داچې شاعر دخپل احساس تابع دی او دی و کولای شي چې

خپله دنیا یا ده د احساس دنیا دد بانډنۍ جهان د پاره د کتنې معیار او هنداره کړي .

دا برخه په هنر کې بل باب خلاصوي چې هغه ته باید یو خاص سبجکټویزم ووایو یعنې هغه طرز تفکر چې وایي: هرڅه چې

شته او وي به هغه د فرد فردیت یا ده ځان دی یا داچې د وی وایي هرڅه ته چې حقیقت وایي هغه د فرد فکر او ده د رایه ده چې پر نور جهان باید حاکمه وي، دا طرز

تفکر په حقیقت کې پر نور جهان د احساس تسلط یا خو د پوه انسان هغه (میډت) ګڼل سویدی چې ځان هرڅه بولي .

عقل مګر ضد ئي بیا د هغه (ریشنلیزم) په غیږ کې جهاني عقل یا عقل کل ته مراجعه ده چې د فرد عقل او هرڅه دلته قیمت نه لري .

خیر! دلته زما مطلب دا ؤ چې هنر د (میډت) په غیږ یا د هغه حساسي غیږي ته هم لوېدلی دی چې د ځان په اندازه جهان هم وینې یا داچې ددې مذکوري خاوندان خپل احساس ته دا اجازه ورکوي چې هرڅه په خپله تله و تلي نه داچې عقل او جهان بیني پر تله کړي .

# نوي علمي معلومات

پوهانو ثابته کړې ده چې د لمر تودوالی قطب او استوا ته په یوه اندازه رسیږي که چیري د قطبو یخی یو ځل او بیا نوبیا بیرته یخ نسي اما قطبي منطقې د یخو ډنډو طبقو پټې کړې دي او موږ ګمان کوو چې قطبي منطقې خوراسړې دي .

پوهان د څېړنو په اثر ددې نتیجې ته رسیدلي دي چې په قطبو کې د سړو علت د یخو وجود دی، اوس اوس د ټولو جوی تغیراتو په نظر کې لرلو سره د لمر د تودوالي درجه چې قطبو ته رسیږي د سانټیګراډ (۵) درجو په اندازه ده نو لدې امله که چیرې د قطبو یخونه په کومه واسطه او بهسې نو بیرته نه یخیږي او د قطبو هوا به هم ژر تر ژره د اعتدال خوا ته راسي په بل عبارت د لمر د تودوالي اندازه چې د قطبي او استوائي سطحو هر مربع متر ته د یو کال په ظرف کې رسیږي یو شان نه ده، اما د قطب او استوا د ټول اختلاف علت یوازې د تودوالي د جذبولو په طریقه کې دی: بحرونه د لمر تودوالي په سلو کې له (۹۰) څخه تر (۹۵) پورې جذب کوي او د خپلو نژدې منطو د تودوخې درجې د لوړ والي سبب ګرځي .

نو چې هم (۸) په سلو کې تودوالي جذب کوي اما واوري او یخې له (۱۰) تر (۴۰) پورې تودوالي جذب کولای شي .

خو په سلو کې له (۸۰) تر (۹۰) پورې ئې تلف کوي هم دا سبب دی چې د قطبو هوا تل تر تله سړه وي که چیرې دا یخې په او بو بدل شي نو د قطبو هوا به هم معتدله شي او دا سې ثابته شوې ده چې د لمر د منظومې نوري سیاري د مځکې د کرې مدار ته تغیر ور کوي .

دا امر هم ددې سبب شویدی چې د یو ملیون کالو د تیریدلو سره د هغه تو والي څخه چې د مځکې کرې ته رسیږي څه او څه کم شي

د «سوځند» ژباړه

# ماکس پلانك یایو ستر اقتصادی پوهانـــد

د المان مشهور پوه چې دځوانۍ په جریان کې ئې ورو،ورو یولوی انقلاب په وجود راوړی داپریل د میاشتې پر ۲۳ نیټه په ۱۸۵۸م کال کې دا تحادی المان په یوه ښارکې وزیږیدی اودخپلو تحصیلاتو ترسرته رسولو وروسته ئې دموني‌خ په پوهنتون کې په کاربا ندی شروع وکړل .

ماکس پلانك په داسې وخت کې چې دخپل عمر ۳۵ پسرلی ئې نه ؤ تیر کړی په پوله‌داسې مطالعاتو باندی پیل وکړ چې هغه‌ته د (انرژی انتقال) ویل کیږی. چې پدې لاره کې ئې ستر موفقیتونه په برخه شول .

نوموړی دخپلو پرله پسې تجربو اوربړونو په رڼا کې د دسمبر دمیاشتې په ۱٦ نیټه په کال ۱۸۹۹ بریالی شو چې انرژی هیڅکله په اتصالی توګه‌سره نه انتقالیږی، مګر تیر معاصر پوهـان تر ۱۸۹۸ کاله پوری پدې عقیده وه چې انرژی له یوې نقطې څخه وبلې نقطې ته په اتصالی ډول سره حرکت کوی .

څرنګه‌چې د ۱۸۹۹ کال په لومړی‌وختو کې پوهان‌او بالخصوص کیمیا پوهانو پـدې باره‌کې کافی معلومات پخپل لاس کې نه درلودل. نو په‌دغه اساس یو زیات شمیر پوهانو دماکس پلانك د نظریاتو سره مخالفت وکړ اود سرکښې لاره ئې غوره کړه. دې مخالفتو اوسرکښیو بیا هـم ماکس پلانك د خـپل تعمیم څخه نه وګرزاوه اونه‌ئې دتفکر قیضه دلاسه‌ورکړل نو ئې تجویز و نیوی‌چې یو کتاب دی په همدې باره کې ولیکی اودامریکائی پوهانو پر نظریاتو باندی رڼـا واچوی .

ماکس پـلانك پنځه کاله وروسته یعنې پـه ۱۹۵٦ کال کې بریالی شـو چې د ټولو پوهـا نـو نظریات او عقائـد په دې موضوع کې وخپل ځان ته‌راوګرزوی اوجلب کړی .

## ټولی ژبې یو ډول الفبا اوتوری لری

داسې امکان لری چې ځینې تصور اوفکر وکړی چې په هره ژبه کې توری (حروف) مساوی دی مګر داسې نه‌ده لکه‌چې (دری) پنځه‌څلویښت‌توری، عربی اته‌ویشت توری، انګلیسی او ها لینډی هـره یـوه شپږویشت توری، ایټالوی اوه ویشت تـوری یونانی څلویښت تـوری ، اسلاوی څلو یښت تو ر ی ، قیطی دوه‌دیرش توری، فرانسوی پنځه‌ویشت تور ی لری او چینائی ژبه‌الفبا نه‌لری‌او دهغه په عوض تقریباً شل زره‌شکلونه اوسیلابونه په خپل لیك او لیـکنه کښې استعمالـوی .

---

### خورالیری ستوری

شکلو کی نومی روسی ستو ر ی پیژ ند و نکی د مځکې له کرې څخه‌یوخورا لیری‌ستوری کشف کړ .

دا ستوری زموږ څخه دلـسوملیار ډونوری کلونو په‌فاصله لیری‌واقع‌دی او په یوه ثانیه کې دمځکې له کرې څخه‌د(۱٦۵) زرو کیلو متر و په سرعت لیری کیږی .

# مځکه په څه شکل ده

(د ۱۲ مخ باته برخه)

د خپلې صحیح غوښتنې څه چې د خانه نشین سره ئې په هغه کې بحث کاوه تر ډېر اندازې خوشحاله شو چې خپل حرکت ئې ښه تیز کړ او درې میاشتې د مخه تر معینې وعدې وخپل د کښینستو کلي ته را وګرځید ．

نړی نه ګرزیدونکی په دغه ټولو موده وایر ته به ناست و او په هغه خوا چې نړی ګرزیدونکی تللی ؤ او په هغه ځای کې چې دده دستر ګو نهام شوی ؤ ناست ؤ ډېر غمګین او همېشه به ئې ژړل ．

لومړی امیدواره ؤ چې رفیق ئې راسي پسله یو څو مودې مایوسه او ناامیده شو ．

نړی نه ګرزیدونکی به هره ورځ په فکر کې دا تکرار و ل چې: (پوهیږم چې نړی ګرزیدونکی د مځکې څنډه و آسمان ته ولېدلی دی) ．

آمانړی ګرزیدونکی په پوره صحت سلامتی او کامیابی بیرته وخپل کور ته راغی ．

رشتیاهم ډېر هغه لار چې کلی ئې ډراینې و نه ډېر بله لار و کلی ته راغی ، هغه وخت نو نړی نه ګرزیدونکی داومنله چې مځکه ګردی اود کری په شکل ده او خلګ کولای شي چې د

مځکې پر مخ ژوندو کړی چې ښې ئې یو د بل وخواته او سرونه ئې په مخالفو خواو کې واقع دی ، اود خپل کلي نوم ئې واړاوه اود (لوړی مځکې) د نامه پر ځای ئې داسې نوم پر کښېښود لکه د نورو کلو ．

او س نو کومه برخه ددې قصې حقیقي او کومه برخه ئې خیالي ده ؟

حقیقت هم دادی چې مځکه د کری په شکل او ګردی ده که د ختیځې خواته ولاړ شي او خپلې مخامخ لارې ته ادامه پسې ورکړی آخر هم وهغې نقطې ته رسیږ ی چې حرکت مو ځنې کړی وی خودلویځې خوا به هم هغې نقطې ته ورسیږی ．

برسیره پردې نکتې باندې چې پخوانیو خلګو دا تصور کوله چې د مځکې پر لـوړه سطحه ژوند کیږی اودغه رنګه ئې که و ګښتې برخې ته ورشي نوبه پر خطرونه ئې تهدیدوی دغه ټول حقیقت نه دی ．

یو لیکونکی چې (لاکتانیتوس) نومیږی داسې نوشته کوی ．

(آیا ممکنه ده چې یو هوښیار انسان دغه بې علمانه تصور قبول کړی چې د نړۍ د کری په یوه نقطه کې انسانان چپه ولاړ شي یعنی سرونه ئې د مځکې وخواته او ښې ئې د آسمان

وخواته وی اوهلته وانبه او درختې نسکوره شنه شي اوباران اوژلۍ د پورته د خوا واوری)

که زمونږ دپوه نړی ګرزیدونکی په تیره کې د لاکتانتیوس کتاب وی اود فراغت په وخت کې هغه و وائی ． نو دی به کله چې د خپل کلي و مقابلې نقطې ته د نړی په هغه بله خوا

کې ورسیږی نو دی به حتماً د کتاب پر لیکونکی باندې و خاندی ． برسیره پردې چې لاکتانیتیوس لیکونکی ؤ هغه د بې عقلو خلګو څخه وحشت او بیره درلوده ．

نو زمونږ نړی ګرزیدونکی بېشکه د خپله ځانه سره دا وایو :

که لاکتانتیس په خپله مسافرت او نړی ګښتی کړی وائی البته دا شیان به ئې نه نوشته کوله ．

په دغه وخت کی زه او نړۍ ګرزېدونکی په دوو مقابلو نقطو کی ولاړ یو او په دغه وخت کی زموږ دواړو سرونه د آسمان و خواته او پښې مو د مځکې و خواته دی. دغه ډول و نی هم په دغه او هم په هغه ځای کی په یوه ډول شنه کیږی

او ددوی ریښې په مځکه کی ننوتلی تنې او ښاخلې ئې د مځکې څخه د باندی راوتلی دی.

دغه ډول باران او ژلی هم د وریځې څخه مځکې ته راتوئیږی، که یو څوک قدرت د فکر کولو ولری په آسانی سره متوجه کیدای شی

چې غیر له دغه څخه بل شی نه شی کیدای. که مځکه ګردی وی خلک د هغې پرمخ باندی د هغو میږیانو وضعیت لری چې د هندوانی پرمخ باندی ځی.

آیا کومه برخه ددې قصې خیالبافی ده؟ یوازی دغه برخه د خیال زیږید نه ده

چې لمړنی سفر د مځکې پرشا و خوا باندی د دریاب له لاری څخه په ډېر زحمت او تکلیف پای ته ورسیدی.

دادی تاسی ته مو وویل چې د مځکې پرشا خوا باندی مسافرت څنګه پای ته ورسیدی

آما لومړی راسی چې د تاریخ یو څو ورقې را واړوو.

دغه نقل د علم او جهل په مابین کی یو جنګ دی او د هغو قهرمانانو او شهیدانو سوانح ده چې د علم او نجوم په لاره کی ئې د هیڅ ډول

کوښښ زحمت او حتی د خلکو په مابین کی د حقیقت او د هغه د نشرېدو په لاره کی د هیڅ ډول قربانۍ څخه سرندی غړولی دا دی تاسی ته مو بیان کړل.

(پای)

داستان

# د سپینو زرو قندانۍ.

(رابرټ دال رون) د امریکا یو پخوانی پوهاند لیکی:

یو ځوانه نجلۍ چې ډېره پوه، تحصیل ئې کړی، او د نیویارک د یوې معتبری کورنۍ څخه وه، یوه ورځ له خپل ښار څخه د خپلې عمه کره چې کور ئې ترښار د باندی و د څو ورځو هواخوری د پاره ولاړه پدې ځای کی پخوانی کورونه ډېر، خو په دغه کور کی

یو اطاق هم و چې په هغه کی چندانی څوک نه اوسېدل، زیاتره به ئې دروازه تړلې او ویل کېده به چې په دغه اطاق کی د مړو ارواح حاضر او پیریانان لری.

دغه نجلۍ دوې، درې ورځې د خپلې عمه کره وه چې ناڅاپه هلته نور مېلمانه هم راغلی او چې موجودی خونې ټولې ډکې شولې نو عمه ئې خپلې وریرې ته وویل: په ځان کی د ومره جرئت وینې چې خپل اطاق مېلمنو ته ور خوشی او ته هغه درانه اطاق ته ولاړه شی؟

وریرې ئې هم د عمه خبره ومنلې او و ئې ویل چې: زه له پیریانانو څخه نه بېرېږم او نه د مړو په ارواحانو کی ری وهم.

شپه شوه او هغه باجرئته نجلۍ په ښه مه زړه او بېله کوم وهم هلته بیده شوه، چې شپه پخه شوه، نجلۍ له خوبه ویښه او وئې لیدل چې د یوې زړې ښځې سایه چې په پخوانی طرز

ئې د نوکری کالی اغوستی دی اطاق ته راغله، لومړی ئې کومه ډېره حس نه کړه ځکه ددې ګمان شو چې د عمه د کور یوه نوکره ئې ده او کار به لری.

لیکن تر څه فکر کولو وروسته ئې ورپه یاد شوه چې تر بیدېدو دمخه خومې دا طاق دروازه وتړله، سره لږ زېدلي او وېرېدم، او خاص بیا هغه وخت ډېره وېرېدمه چې هغه سایه

ودې ته نږدې شوې او سر ئې ورکښته کړ چې خبري ورسره وکړي، لیکن ژبې ئې کومك نه

کاوه او ږغ ئې له خولې نه راوت. پدې وخت کې بېرې زیاته غلبه پر کړې، او بې اختیاره ئې پر سر تلتك راکش کړ. لیکن څه کړي

وروسته ئې سر له تلتکه را ایستلې چې و ئې کتل څوك نسته، نو ژر له ځایه پورته دروازې ته ورغله که ئې کتل، دروازه لکه څنګه چې وه تړلې وه همغسې بنده او هیڅ لاس نه دی وروړه شوی.

له دې پېښې څخه څه وخت تېر شو، او کله چې نجلۍ دخپل پلار کره وه هلته یوه شپه چې کور ښځې او نوری مېلمنې هم وره ناستې وې ناڅاپه ددوی په منځ کې دیوې ناشنا خته ښځې

سایه ښکاره شوه له حاضرینو څخه چې زیاتره ئې پخې ښځې وې، تر هغه کړیه نه داسې شی لېدلی

او نه ئې په همغسې بڼه څوك پېژاندہ، لیکن هغې سایې پخپله خپل ځان معرفي کړ او داسې ئې وویل چې:

چې زما نوم (سارا کلارك) او زه په پخوا وختو کې ددغې نجلۍ دعمه د کور نوکره، او

څه وخت دمخه چې دغه نجلۍ دخپلې عمه کره صحرا ته تللې وه یوه شپه مې ځان ورته حاضر، او قصد مې کړی ؤ چې دغه نجلۍ خپلې عمه (زما پخوانی بادارۍ ته) لدې امله چې زما

څخه پخوا په هغه کور کې څه ګناوی شوې وی

واسطه او پر خپلو ګناو بخښنه ځینې وغواړم.

لیکن ژبه مې بنده، بنده شوی، هر څومره چې مې کوښښ وکړ چې اصلی مطلب

ښکاره کړم موفقه نه شوم. دغه د پښېمانۍ او دګناو بخښنې حس په ما کې دومره زیات شوی دی چې تر اوسه ناآرامه، او هر ګړۍ مې زجر او عذاب دې ته مجبوروی چې هغه کور ته چې په ژوندونی هلته پکښې اوسېدم یوه وسیله پیدا کړم.

ګناه مې دا ده هغه وخت چې زه نوکره وم دسپینوزرو قندانۍ او ځینې نور شیان مې چې نو مونه به ئې ذکر کړم دغلا په صورت وړی دی

او س څرنګه چې ښایی له خپل هغه کردار څخه پښېمانه او په ډېر تکلیف اخته یم، زه به ډېره خوښه او ممنونه شم که د غه نجلۍ زما په باره کې له خپلې عمه څخه یوه بخښنه را

وغواړی څو آرامه شم، شیان ئې یو، یو ذکر کړه او یاداښت ئې واخیسته شو.

تر دې وروسته کله چې نجلۍ دلومړی پلاد پاره دخپلې عمه سره ولېدل، دخبرو په ضمن کې ئې له عمه څخه پوښتنه وکړه آیا یو وخت تاسې داسې نوکره چې نوم ئې (سارا کلارك) وی درلوده؟

عمه ئې ورته وویل چې:
هو! تقریباً ۳۰ یا ۴۰ کاله دمخه د ا زموږ نوکره وه.

نجلۍ: دا څرنګه ښځه وه؟

عمه: ډېره معقوله او پاکه ښځه وه.

نجلۍ: کله چې هغه دلته نوکره وه آیا پدې کور کې مو دسپینوزرو یو شی نه ؤ ورك شوی؟

(نور په ۲۷ مخ کې)

# افغانی کوچیان

نباغلی لیلیزی

زموږ کوچیان امکان لري
چې د پخوانـی تاریخی لـو ی
ژوندانـه د دوری شپنیتوب او
مالداری بقایاوی دوی ته څکه

کوچیانویل کیږی چې د کال د
څلورو موسمو نوداغیزی اوجوی
حالاتو د بدلون له کبله ددې
دپاره چې یوداسې ځای ومومي

چې دوی او مالو نـه ئ ی پر
اوسیدلای شی تل دپوې میږی
څخه بلی ته لیږدی چې په اصطلاح
دغه‌حرکت ته‌ئی کوچیتوب‌ویل
کیږی.

افغانی کو چیان
چې زیاتره برخه ئې
په پښتنی کو چیانو
مشهـو ر دی د هغو
آریائی ټبرونو څخه
دی‌چې په‌زړو کتابو
اوافسانوکی‌دوی‌دپخه
پکت اوپښت په نامه‌یاد شویدی
اودپیری پخوا زمانی راهیسی

دځنومؤرخینو په‌عقیده دمیلاد
پنځه او اوه زره کاله دمخه د
پښتونخوا په بیلو سـیمو کی
اوسیدل.

ددغو کوچیانو مشهور خیلو
نه اوږی، د لودیانو، اڅوالو،
خوازکو،دپټانړو، خروټو،ترکو
ناصرو، اندړو، سلیمانخیلو او

داسی نـورو څخه عبارت دی
څرنګه چې زموږ هیواد جګک

غرونه بهاند سـیندونه او
لوئی بیدیاوی لری نوددوی
دځرځایونه هم‌سره ویشل

شویدی په هغو سیمو کی
چې د زراعت او کرهڼی
دپاره امکانات نه وی او
اوبه غیر له باران‌په بل‌ډول
ور رسیدلای نه‌شی کوچیان
په دغو سیمو کی په آزاد

ډول ټنګ‌او راټنګ کولای
شی‌خوهغه‌سیمی‌چې‌جلګی
اوعلف‌چرونه‌اودغرولمنی
لری دغه‌سیمی‌ددوی په‌منځ

کی په قومونو باندی‌ویشل
شـویدی او کله چې کال
خراب او شنلی د دوی د

حیوانانو،دپاره په‌کافی
اندازه نه‌موندل کیږی نو
ددې لاری څخه دوی پـه
مشکلاتواخته‌وی اود پوې

او بلی قبیلی دسیمودانښتلو
په‌واسطه ددوی په‌منځ کی
لوی‌جنجالونـه او مسایل
پیښیږی‌دافغانی کوچیانو
د کوچیدلو سـاحه پخوا
ډیره پراخه او مناسبه وه

اوددوی د لوئی پښتونخوا هـرو
سیموته په‌آزادانه ډول ټنګ او
راټنګ کولای شوای خو پـد ې
وروستـه کلوکی دځنو سیاسی لانجو

له کبله‌ددوی په لیږدیدلو باندی
قیود اوشروط اینبودل شویدی.
دپلټونکو اوڅورسټانو څخه چې
تراوسه د کوچیانو په خصوص

کی څه‌معلومات لاس ته‌راغلی
دی دوی په‌یوه ډول داوائی چې
دافریقی دشمالی سیمو، داتلس
دځنلړو اولمنو، منځنی‌ختیځ‌او
آسترلیا د کوچیانو د ژوندانه

حالات ډیر توپیر نه
سره‌لری‌ددوی‌دژوندانه
وضع دحیوانانو پـه
رانیولو او خرڅولو
باندی‌بناده دکرهڼی
په‌چارونه پوهیږی‌او
هغه‌چې د متمدنو او
یا مترقی ملتونو دځنګه‌اوسیږی
هغوی تل‌خپل اومـه‌مواد لکه

وړیه، پوستونه، غوړی او نور
مال پر هغوی پلوری‌اوپه مقابل
کی ئې جنس اواوبدلی ټوکران
ځنی اخلی‌چې‌دغه بیا د کاونړیو

هیوادونو په سر حد و نو کی
پلوری چې‌ددا سی تجارت کولو
په‌واسطه‌اوس‌دوی‌زیاتره‌شتمنی
اوښه مالی استعدادو نه لری.

دافغانی کوچیانو زیاتره لوی
تجارتی بازارونه د کلات او

شاجوی سیمې او د پکتیا تنګی دی ددې نه پرته ځني افغاني کوچیان شته چې هغو ته موږ نیم کوچیان هم ویلای شو دوی د خپلو

میڼو څخه ډیر لیري نه ځي د کال زیاتره برخه دوی په کیږدیو کې اوسي خو په ژمي کې بیرته خپلو کورونو ته ستنیږي دوی په

مالداري او څارو روزلو زیاتره اخته وي او که کال ښه او حاصل خیزه وي په کرهنه هم کله لاس

پوري کوي، یعني مالداري او کرهنه ئې سره ګډه کړې وي د دغو ډولو کوچیانو نمونې موږ د افغانستان په جنوب لویدیځو

سیمو کې زیات لیدلای شو چې هغه د نورزو، اسحاق زو بارکزو

اڅکزو او داسې نورو قبرونو څخه عبارت دي .

(کلومس فردیناند) چې د افغاني کوچیانو په خصوص کې مفصله مقاله لیکلې ده دیو لږ څیړنو وروسته وایي :

چې په نړۍ کې کوچیان په بیلو، بیلو ډولونو کړندیو کې اوسیږي د لیمځي ګردي کیږدي

اوخرګاه چې په منځنۍ آسیا کې پیدا کیږي او توري کیږدي چې په منځنۍ او نژدې ختیځ کې

کارځنې اخستل کیږي همدا شاني په تبت کې یوډول کیږدي پیدا کیږي چې د نژدې ختیځ د کیږدیو سره اړیکه لري اودا به له دې کبله وي چې تورو کیږدیو پخوا د ختیځ او لویدیځ ترکستان په شمول په لویو سیمو کې رواج درلود د تاریخي منابعو څخه معلومیږي چې هندوارو پائیان دافغانستان څخه ختیځ خواته خپاره شول چې د چین د سرحدونو او کاني ولایت پورې ورسیدل دا کور دوه زره کاله د مخه د هن د کورنۍ د مشر تابه زمانه وه همدا شانې تورې کیږدې پخوا لدې چې په ختیځ کې استعمال شي موجودې وې ځکه نو امکان لري چې هندو اروپائیان د تورو کیږدیو او سیدونکي وه د ارابطه د ترکانو او مغولانو له یرغل څخه وروسته وشلیدله اودوی په پخوا زمانه کې د تهذیب له کبله تبت له نژدې کړ وروسته بیا دا نژدیوالی له منځه ولاړ او هغه د ترکانو او مغولو د یرغلو نو له امله ؤ چې هندو اروپائیان ئې له منځنۍ آسیانه وېستل تو لدې امله د دوی په دغو سیمو کې یوازې د کراستي ګردي کیږدې پیدا کیږي او داسې څرګندیږي چې په منځنۍ آسیا کې کې تور کیږدې نسبت خرګاو ته پخوانۍ دي دغه محقق وایي په

افغانستان کې د کیږدیو درې ډولونه سته د ختیځ افغانستان د غلجیانو ، دافغانستان په جنوبي او شرقي کې د درانیانو او د غور د خلکو .

د ژوندون مجلې څخه

(د ۲۵ مخ پاته برخه)

د سپینو زرو قندانۍ

عمه : لږ څه فکر کړي

وني ویل: په زړه کې مې را ګرزي چې د سپینو زرو قندانۍ او ځنې نور شیان غلا شوي وه .

نجلی: آیا ستا زړه نه درته ویل چې دغه شیان دي (سارا کلارک) وړي وه؟ .

عمه: یه. هغه دومره ښه ښځه وه چې په هیڅ صورت ممکن نه ده چې د دغسې کارو نسبت هغې ته وشي .

وروسته نو نجلۍ یعني وریرې ئې ټول تفصیلات ورته بیان، او دوه کوشیانو هغه یادښت چې په خاطر کې ئې ؤ ورته ووایه، آخر عمه ئې د نجلۍ د شفاعت سره سم د نوکري له ګناهو څخه ور تیره شوي او وئې ویل ؟

وختي چې هغې داسې کار کړیدی نو زه تر خپلو شیانو ور تیره او بخښښ ورته کوم .

تردغې ورځې وروسته هغه د عمه د کورخونه د نورو خونو په شان د ګذاري شوې، او هلته بیا نه چا پیري لیدلي، او نه د کومو مړو ارواح ولیده شو .

د (نیازي) ژباړه

(پای)

# پیاوړی او مسعودی ټولنی

هغه جامعه پیاوړی نه ده چی د نفوس له نظره ډیره او په کثرت کی واقع ده .

ستره ټولنه هغه نه ده چی د ارضی مساحی له مخی

پراختیا او وسعت ولری بواځی ستر کام او مسعود خلک هغه نه دی چی ښارونه ئی په فابریکو ښکلو ښنګلو

صناعتی موسسو او حاصل خیزو منابعو سمسور شوی وی .

په هغی جامعی کی خیر نشته چی وګړی ئی لکه بی روح او بی ارادی ابزار د هرچا شومی او د اغراضه

ډکی آرزوګانی پر ځای کوی .

هغه لوی خلک نه دی چی د پلرو او نیکونو په کار نامو ویاړی او خپل ژوند په طفیلی ډول تیروی .

ستره جامعه هغه ده چی هلته پلار زوی ته د

ایمان د اری او شهامت اخلاص او امانت مېړانی شجاعت حلم او دیانت درس ور کوی .

هلته مور و خپل زوی ته د زانګو څخه را نیولی بیا د عقل تر رشد او کمال

پوری د وطن پرستی نوع پروری د باطلو او ناروا

سره د مجادلی او د بینوا او لوږدلی سره د مرستی او تعاون د فاسد او خطا کار څخه د بیزاری او د خپل ولس د پساره د منفعت او

خدمت تعلیمات ور یاد وی .

هلته چی د خوار او غریب سره همدردی او غم شریکی کیږی .

هلته چی دروغ ویل او خطا ایستل کورټ وجود نه

لری هلته چی بی پرسی او بازخواستی د ټولو بلاوو او خراب کاریو منشاء بولی .

هغه چی ټوله په ټول قوت د نفاق د واوری د ته اوزه د کلماتو

د حذف کولو په لټه کی دی هلته چی د بشری او انسانی کرامت د د مقام ساتل د هرچا وحقوقو ته

احترام کول د مضرو عناصر و د امیالو سره مجادله کول د هغه ځای د خلکو آخرنی او وروستی آرزو ده .

هلته چی د رشوت خورو او ظالمانو، د قانون څخه د منحر فینو او متجاوزو کسانو د

اجتماعی عد الت او د خلکو د اسایش او رفاهیت د ښمنانو سره

اخلاقی. جدی مبارزه پر مخ روانه ده .

هلته چی بی علمه او ناپوهان تر هر څه د مخه د سعادت او سمی

لاری د میندلو په هکله د پوهانو او عالمانو او مشرانو څخه مشوره او استمداد غواړی ستر

خلک دی او هغه پیاوړی او مسعوده جامعه ده .

نظام الدین (برکی وال)

